# اســــلامي خلافت

# د نړۍ په مسلمانانو ســـــتر نعمت!!!

تألیف: شیخ أبو عمر خراساني حفظه الله



# اسلامي خلافت

# د نړۍ پر مسلمانانو ستر نعمت




**د نشراتو څانګه**

**د خپرونو لړۍ (١)**

## بسم الله الرحمن الرحيم

**ان الحمد لله نحمده ونستعينه ونستغفره، ونعوذ بالله من شرور انفسنا وسيئات اعمالنا، من يهده الله فلا مضل له، ومن يضلل فلا هادي له، واشهد ان لا اله الا الله وحده لا شريک له، واشهد ان محمداً عبده ورسوله.**

**{يَا اَيُّهَا الذين امنوا اتّقُوا اللّهَ حَقّ تُقَاته وَلا تَمُوتُنَ الاّ وَاَنتُم مُسْلمُونَ} [ال عمران: 102]**

**{يَا اَيُّهَا النّاسُ اتّقُوا رَبّكُمُ الّذي خَلَقَكُمْ منْ نَفْسٍ وَاحدَةٍ وَخَلَقَ منْهَا زَوْجَهَا وَبَثّ منْهُمَا رِجَالاً كَثِيراً وَنسَاءً وَاتّقُوا اللّهَ الّذي تَسَاءَلُونَ به وَالاَرْحَامَ انّ اللّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقيباً} [النساء: 1]**

**{يَا اَيُّهَا الّذينَ امَنُوا اتّقُوا اللّهَ وَقُولُوا قَوْلاً سَديداً يُصْلحْ لَكُمْ اَعْمَالَكُمْ وَيَغْفرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَنْ يُطعِ اللّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزاً عَظيماً} [الاحزاب: 70، 71]**

**اما بعد؛ فان اصدق الحديث كتاب الله، وخير الهدي هدي محمد صلى الله عليه وسلم، وشر الامور محدثاتها، وكل محدثة بدعة، وكل بدعة ضلالة، وكل ضلالة في النار.([1])**

**په ټوله نړۍ د غمونو تور څادر خپور و، د ظلمونو د تيارو له امله ورځ تر شپې بېلول ګران شوي و، عرب او عجم د جهالت په يوه خړ ګرداب کې ښکېل و، ټولو ولسونو په تورو ترورېميو کې د رڼا په هيله سترګې غړولې، د عدل رڼا نه وه او نه يې څه اغيزه تر سترګو کېده، ډېر خلک د ژوندون د سختو ناخوالو له امله مرګ ته سترګې په لاره و، په ژوند کې هيڅ خوابه نه و پاتې، ورځې او شپې د بيګار په توګه تېرېدې، د خپلولۍ احساس او د زړه سوی له مينځه تللی و، لوڼه په ځمکه ژوندۍ منډل کېدې، اولادونه د وسلې په توګه کارول کېدل، د ژوند کوم ځانګړی هدف نه و معلوم، علم او پوهه په صفر کې ضرب وه، د لاسو جوړو شويو شکلونو (بوتانو) عبادت کېده، په وړو وړو خبرو په زمانو زمانو جګړې او په نسبونو فخر کېده، د خلکو له خوا جوړ شوي قوانين (ولسي دودونه او قومي تړې) عملي کېدې او د ولسونو لپاره هيڅ يو اسماني قانون نه و چې د عدل فيصلې پرې وکړي، غلا، سود، غصب، لوټ مار او ډاکې د روزۍ ګټلو يواځينۍ لارې وې، عياشي او عرياني عروج ته رسيدلې وه، بربنډتيا عامه وه، پرده او حياء لمنځه تللې وه، صداقت نه و او په همدې توګه ټوله نړۍ تورو تيارو نيولې وه، چې د مکې په ښار کې د عدل، صداقت، امانتدارۍ، ديانتدارۍ يوه روښانه لمر څرک وکړ او د الله تعالی په اراده د مکې شاوخوا په دغه روښانه لمر وځلېده، د (۲۳)کالو په اوږدو کې د دغه لمر وړانګې د ځمکې زياتو برخو ته ورسېدې، تيارې په کډه شوې او د هر چا سترګې د يوه روښانه لمر د ليدلو په هيله وغړېدې، مريان له مريې توبه ازاد شول، ټولو خلکو د يو بل حقونه وپېژندل لوڼه د کرامت لامل وګڼل شوې، پر کشرانو د شفقت لاس راښکل شو، مشرانو ته د هغوی د مرتبې مطابق درناوی وشو، د خوښيو فضا رامنځته شوه او د غمونو او کړاوونو شيبو د پای ټکی ومونده.**

---

[1] سنن النسائي: 3 / 188)

دا لمر د خاتم النبين محمّد مصطفى صلی الله علیه وسلم د نبوت لمر و چې د ظلم او استبداد په تورو تروږمیو کې یې د ځمکې مخ ته خپله رڼا راښکاره کړه، الله سبحانه و تعالی دغه رڼا په لاندې کلمو سره یاده کړې ده:

{ قَدْ جَاءَكُمْ مِنَ اللَّهِ نُورٌ وَكِتَابٌ مُبِينٌ (١٥) يَهْدِي بِهِ اللَّهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهُ سُبُلَ السَّلَامِ وَيُخْرِجُهُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ بِإِذْنِهِ وَيَهْدِيهِمْ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ } [المائدة: ١٥، ١٦]

((تاسې ته د الله له لوري رڼا او روښانه کتاب راغلی دی، په دې سره الله تعالی هغه چاته هدایت کوي چې د سلامتیا د لارو تابعداري کوي او په دې کتاب سره یې له تیارو نه رڼا ته راوباسي او د سیده لارې لارښوونه ورته کوي)).

دا د قران او سنت او د اسلام د سپېڅلي دین رڼا وه چې د ژوند هره برخه یې روښانه کړه، مړاوې ځمکه یې یو وار بیا راتازه کړه، د جهالت ستومانه ولسونو ته یې د علم، پوهې او ثقافت ساه وروبښله، د ژوند ټولې برخې یې په ځانګړیو احکامو سره روښانه کړې، د وخت ټولو حاضرینو ته یې له خپلې دغې رڼا نه برخه ورکړه او ټولو ته یې وصیت وکړ، تر څو همدغه روښنايي تر وروسته راتلونکیو ولسونو (غايبینو) ورسوي.

خپلو ملګرو ته یې په کلکه امر وکړ چې زما له خوا نه که یو ایت درورسېده نورو ته به یې رسوئ، لکه چې فرمایي:

(بَلِّغُوا عَنِّي وَلَوْ آيَةً)([1]) (که یو ایت هم وي له ما نه یې نورو ته ورسوئ)

(أَلَا فَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ) ([2]) (یاد ساتئ! همدا دین دې هر حاضر کس غائب ته ورسوي) د خپلو سنتو او تر هغه وروسته د راشده خلفاوو د سنتو او ټولو اسلامي مشرانو پر تابعدارۍ یې امر وکړ او په پوره ټینګار سره یې وفرمایل:

(عَلَيْكُمْ بِتَقْوَى اللَّهِ، وَالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ، وَإِنْ عَبْدًا حَبَشِيًّا، وَسَتَرَوْنَ مِنْ بَعْدِي اخْتِلَافًا شَدِيدًا، فَعَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي، وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ الْمَهْدِيِّينَ، عَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ، وَإِيَّاكُمْ وَالْأُمُورَ الْمُحْدَثَاتِ، فَإِنَّ كُلَّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ) سنن ابن ماجه (1/ 15)

((پر خپلو ځانونو تقوی او غوږ ایښودل او د خپلو اسلامي مشرانو خبره منل لازم کړئ، اګر که پر تاسې د خلیفه له خوا نه یو حبشي غلام وټاکل شي او تاسې به له مانه وروسته ډېر زیات اختلافات وینئ؛ نو د اختلافاتو په دغه زمانه کې زما د سنتو او د خلفاء راشدینو مهدیینو د سنتو تابعداري لازمه کړئ، په دې سنتو کلک خپل غاښونه ولګوئ، او له نویو کارونو (بدعاتو) ځان وژغورئ، ځکه هر بدعت ګمراهي ده)).

د نبي علیه السلام او خلفاء راشدینو له سنتو نه یو هم دا و چې په یوه جماعت کې راټول شوي و او د نظام په ساتلو کې یې د تفرقو (ډلو ټپلو) څخه کرکه لرله؛ نو د نظام په جوړولو کې نوی کار دا دی چې امت په ډلو وویشل شي او له دې نه قران او سنت کې منع راغلې ده.

---

[1] مسند أحمد (11/ 25)

[2] مسند أحمد (3/ 477)

د همدې مسئولیت په سپارلو سره هغه له امت نه کوچ وکړ او د دین ساتنه، نورو ته رسونه او د دې خدمت یې همدوی ته وسپارل، دوی هم د یوه خلیفه په ټاکلو سره د دغې ذمه وارۍ او مسئولیت د اداء کولو په لور ګړندي ګامونه پورته کړل او په خپلو هیلو کې بریالي شول، ابوبکر صدیق رضي الله تعالی عنه په پوره میړانه د نبي علیه السلام ورسپارل شوی مسئولیت تر خپلې وروستۍ سلګۍ سنبال کړ، د نبي علیه السلام ټاکل شوي پلانونه یې عملي کړل، د مرتدینو پر ضد یې جهاد اعلان کړ او د زکات منع کوونکیو سره یې جګړه پیل کړه، اسلام یې ببرته پر ټولو خلکو د یوه پیاوړي ځواک په توګه ومانه او په خپلې مړینې سره یې کار د عمر فاروق رضي الله تعالی عنه په غاړه کې ورواچاوه، هغه هم ښه پوره سنبال کړ، د نړۍ ګڼو هېوادونو ته د ده په زمانه کې د الله تعالی دین ورسېده او زیات پرمختګ یې وکړ، تر وروستي خلافت عثماني پورې همدا سلسله راچلېده، که څه هم په مینځ مینځ کې فتنو هم سر راپورته کړ؛ خو بیا هم تر ډېرې مودې مسلمانانو د خپل دین اصلي تصور نه و بدل کړی، ځکه نو په بریالي توګه په خپل موقف چلېدل او روان و، کله چې د اسلامي نړۍ په زړه کې خنجر خخ شو، (فلسطین له منځه ولاړ او اسرائیل) رامنځته شو، د خلافتونو مضبوطه ماڼۍ وړنګېده او پر ځای یې ملوک الطوایفی (شاهي نظامونه) پیل شول، د اسلامي امت دبدبه کمزورې او له عروج (لوړتیا) څخه یې زوال ته مخه کړه، مسلمانان په ډلو ټپلو، سرحداتو او نسبونو وویشل شول، د صلیبی وحشیانو لخوا د استعمار لړۍ پیل او پرلپسې یې اسلامی هیوادونه تر خپلې ولکی لاندې راوستل، بیا د دیموکراسۍ او نورو غربي نظامونو په رامنځته کېدو سره یواځې اسلامي نظامونه نه، بلکې ټول اسلامي افکار له خطر سره مخ شول، د ښو مسلمانانو فکرونه تخریب شول، له الله تعالی سره د خلکو تړاو پرې شو، اسلام یواځې د محراب او ممبر تر بریده محدود دین وبلل شو، د مسلمانۍ د درندو وعدو باوجود ډېرو خلکو اسلامي نظام وحشت، ارتجاع، بنسټپالنه (بنیادګرایي) تروریزم، طرحه ګري، دهشت ګردي، شر، فساد، بې مصلحته، له وخت او پرمختګ سره ټکر او بالاخره نه تطبقېدونکی نظام وباله او په همدې سره یې خپل ځانونه د اسلام له دائرې نه وویستل، سره له دې چې په غټه خوله د اسلام دعوه دار هم دي.

دیموکراتانو او د شاهي نظامونو حاکمانو د اسلامي امت افکار دومره تخریب کړل، چې یو شو غربي هېوادونه یې ورته د یوه برحق معبود (رب) په توګه وروپېژندل، د ملل متفرق (ملل متحد) په نامه د شو کفري هېوادونو هره خبره یې د یوه الهي فرمان سره مرادفه وګڼله او د ځان لپاره یې د یوه مشروع قانون په توګه واجب العمل وګرځوله، په ډېر اطمنان سره د خپلو ویناوو په اوږدو کې کله د ملګرو ملتونو نړېواله اعلامیه او د هغې کفرې مادې د دلیل په توګه وړاندې کوي او کله د بشری حقوقو نړیوال قانون او د هغه کفري مادې، تر دې چې د اسلامي نړۍ د دولتونو د راجوړولو څخه نیولې تر مذهبي چارو او مدني قوانینو پورې یې خپل واګې د امریکې، فرانسې، برطانیې، جرمني او جاپان په لاس کې ورکړل، غربي میډیا د مسلمانانو فکر او روحیه ورخرابه کړه او پر دوی یې داسې تلبیس (ګډوډي) راوسته چې کفر او اسلام یې ورته یو برابر معرفی کړل، تر دې چې په ډېرو مسائلو کې یې اوباما او د هغه ډله (ائمة الکفر) د ستر مفتي په توګه ومنل،

که د یوې موضوع په اړه همدغو د کفر امامانو د حلالوالي فتوا ورکړه، نو ټول یې په تعقیب هماغه فتوا ورکوي او که یو کار یې وحشت وباله دوی ورته په وازه خوله وحشت وايي، سره له دې چې دا به وحشت نه، بلکې د اسلام له سپېڅلیو احکامو څخه به وي، د حلالولو او حرامولو واک د همدغو څو کافرو لاس ته ورغی، د اسلام ویش همدوی کوي، یو یې معتدل (منځګړی) او بل یې متشدد (تونددلاری او سخت دریز) اسلام بولي، دا ټول کارونه د ناکاره حاکمانو دیموکراتیکو او شاهي حکومتونو (طاغوت) د پرېکړو، سازشونو او ترورنونو او د بدمرغه درباري ملایانو د تحریفاتو او تلبیس پایله ده، په داسې کړکیچنو حالاتو کې الله سبحانه و تعالی د خپلې وعدې سره سم، د عراق پر ځمکه یو وار بیا د اسلامي خلافت روښانه لمر وځلاوه، الله تعالی دغه ځمکه د یوه مسلمان، عاقل، بالغ، عادل، عالم، زړه سواندي، زړور، متقي، زاهد، روغ رمټ، مجاهد، د الله د شریعت نافذوونکي، قریشي، د محمدرسول الله صلی الله علیه وسلم، فاطمې او علي رضي الله تعالی عنهما لمسي، د غرب د سترګو ازغی، ابوبکر ابراهیم بن عواد البغدادي القریشي (حفظه الله ورعاه و نصره) په واک کې ورکړه، د امت مسلمه ټول جهادي او دعوتي جماعتونه ورسره یو شول، ټولو ورسره بیعت وکړ، په لاس لاندې ځمکو کې یې د الله تعالی احکام او د محمدرسول الله صلی الله علیه وسلم طریقې راژوندۍ کړې، حدود یې نافذ کړل، د اسلام دښمنانو ته یې غاښ ماتوونکی ځواب ورکړ، د اسلامي امت ستر مقاصد یې ورپوره کړل، د ټولې نړۍ د مسلمانانو هیلې یې راژوندۍ کړې کفار یې مایوسه او له سختې وېرې سره مخ کړل، د نړۍ مسلمانان یې په یو ټغر کې سره راټول کړل، جماعتونه او تنظیمونه یې ختم کړل، ټولې کفري جغرافیایي باډرې یې لغوه اعلان کړې،د ټولې نړۍ کفارو ته یې اختار ورکړ او ټولو مسلمانانو ته یې د همغږۍ بلنه ورکړه، په همدې سره یو وار بیا په ټوله اسلامي نړۍ کې د عدل او انصاف لمر وځلېده، یو ځل بیا د نبوت پر منهج ولاړ نظام رامنځته شو، د ستري امت سترو هیلو دمه ومونده، د ټولې نړۍ کافر د رعب او وېرې له امله په لړزان شول، د بې دینۍ ښاپېرک د ځان لپاره د داسې تیارې په لټه کې شو، چې خپل ځان پکې پټ کړی او د اسلامي خلافت د ځلانده لمر وړانګې یې سترګې وررندې نه کړي، د دغه لمر وړانګې تر خراسانه راورسېدې، د **خراسان مجاهدینو** ورسره بیعت وکړ او لا هم د بیعت لړۍ ښه ګړندۍ روانه ده.

(له دې امله د دغه ستر نعمت د شکر ادا کولو په خاطر ټول مسلمانان له نومورې سره د اسلامي نظام په تطبیق کې په بیعت مکلف دي او باید بیعت ورسره وکړي).

**د خراسان مجاهد، زړور ولس او ټولو جهادي حرکتونو باندې غږ کوم او بلنه ورکوم:**

## راځئ!

یو ځل بیا هغه وخت راغلی چې اسلامي امت د دښمن له غلامۍ څخه ازاد شي او د یوه شرعي نبوي بیرغ لاندې د خپل شریعت په نفاذ سره خپلې سترګې یخې کړي، د شرق او غرب په تبلیغاتو ونه غولېږئ او نه مو شیطانه (ای اس ای) دوکه

کړي، زما د معلوماتو له مخې شیطاني ای اِس ای په دې وروستیو کې یو شمېر خلک ټول کړي او په خراسان کې یې د اسلامي دولت د پرمختګ د مخنیوي لپاره روزلي، د امریکا سناتور د پاکسان ای اس ای شیطانۍ ادارې ته د اسلامي دولت د بدنامولو لپاره د ناوړو پېښو د رامنځته کولو دستور ورکړی، دوی په ګډه پر فعالیت پیل کړی او ځینې مستشرقین یې په کار اچولي دي، چې د شرعي استدلالاتو په وړاندې کولو سره اسلامي امت ته د خلیفة الاسلام ابوبکر البغدادي (حفظه الله ورعاه و نصره) خلافت غیر مشروع ښکاره کړي.

**نو پام کوئ دوکه نه شئ!**

د اسلامي خلافت سیوري ته پنا یوسئ او د نړۍ له ټولو طاغوتي نظامونو او طاغوتانو څخه خپل ځان ازاد کړئ.

و ماتوفیقي الا بالله علیه توکلت و الیه انیب

والسّلام

په ټوله نړۍ کې د اسلامي خلافت د قیام په هیله!




د نشراتو ځانګه

زمونږ خپروني له لاندې ادرسونو څخه ترلاسه کړئ

http://telegram.me/ansar_ul_khilafat
www.Nidaulhaq.zohosites.com
http://telegram.me/Nidaulhaq1